# نقاش

اوربېدلې مې له چا نه دا قصه ده
که مې لوستی یوه کتاب کې شپه ده

یو نقاش چې زمانې وو ځورولې
بې خوبیو، لوږو، تندو کړولې

د هنر کړښې یې تللې وې بېځایه
د نبوغ شغله یې پته و له ښایه

د آسمان له ړندو ستر ګونه لوېدلې
بدبختۍ او کړاووته زیږېدلې

د حقیرو په حلقه کې حقیر شوی
د غنې هنر په اړخ کې فقیر شوی

یوه ورځ یې لوږه زیاته شوه په کور کې
د چوپیا کوزه نسکوره شوه په شور کې

که لویان وو که واړه وو په فریاد شول
ژوند کړیځ شوه، همه واړه په داد داد شول

مور چې ولېدل بې وزله ماشومان خپل
خپل دوړه کترى، په نس وږي بچيان خپل

چې په لوږه نارې وهي غوغا کړى
سر تندى وهي ډوډۍ پسې ژړا کړى

رڼا ورځ يې توره شپه شوه دغمونو
لار ترې ورکه کړه هره خوا مصيبتونو

توفاني ببرۍ شوه واخيسته موجونو
او ښکو ډوبه کړه دنيا شوه دغمونو

پښې لوڅې سر سرتور گريوان شکېدلى
رنگ الوتې شونډې ژېړې مخ شکولى

فريادى په تلوار راغله مصورته
خپل خاوندته دغمونو مفسرته

ور د مخه شوه بېباکه لمبه ناکه
وى يې اې زړه ډبرينه اې سفاکه

څه دپاره دا دغم نقشونه باسې
کومه ورځ به د بچو تپوس له راسې

هغه ونه دا آسمـــــــان او دا دریـــــاب
چې دې کښلی دي د خپـــل زړه په خوناب

هغه ړونـــد چې بې امســـا په لار روان دی
هغه سپـور چې معـــرکه کې په جولان دی

هـــا مـــرغه چې رپـــوي وزر جـوړې ته
هغه زوړ چې لاس یې پـــورته دي توبې ته

دغه نـــور عبث شیان چې رسمـــــوې ته
کوم لباس کومې ډوډۍ کومې او ګرې ته

دې بې ځانه تصـــویرونو نه څه غـــواړي
په دې خـــوار فن باندې ولې دومره ویاړې

دغـــه دړې عبث ولی رنګـــــــوی ته
دا رنګــــــونه خوشې ولی خرڅـوی ته

په دې خوار دو بې روزی هنر کې څه دی
بې له لوږی او خوارۍ نه چې خـواره دی

ماشومـــــان دې وږی تږی اسکـــــیرلی
بربنـــډ شوی رنځور شوی ځـورېـــدلی

راولـــی په ژونـــد وسارو بدی چـــاری
د بې ځـــــان تصویر لپــــاره باسی لاری

ځـان داران دې له بې ځـانونه قربـان کړل
خپل بچیـان دې له خپل لاسه پریشان کړل

دغــه څنـــګه عاطفه څنـــګه هنـــر دی
دغــه تیـــــږه ده که زړه د بشـــر دی
نور دې نشم دا رســـوا ژوندون زغمـــلی
نور دې نسم دا حقیـــــر هنـــر منــــلی

د نهنـــګ له خولې نه واخـــله خپله برخه
نه بـــل لور شته نه بله ورخ نه بله کرخه

د همت مــرغه د مــــرد دی ورپسې شه
څه ستومان څه سرګردان شه څه خولی شه

مصـــور چې واورېـــدلی دا خبــــری
لـــه موســکایې توییـــدې دغم شکری

په خنــدا خنــدایې ووی دغـــم یـــارته
د ترخـــه رونـــد دمزلـــــونو وفـادار ته

همـــدا نن شپه دمه راکه چې سبـــا شي
ستـــا د زړه او د خـــاطر غوټۍ به واشي

سري طـــــلاوی دولتـــونه به پیـــدا کم
ستـــا په شونـډو به روان رود د خندا کم

دا حقیـــر خلـــك به وبولـــم حقیــــــر
دا غنیـــــــان چې په فطرت کې دي فقیـــر

د فلـــك په زړه کې به وخوټـــــــوم وینې
د زمــــــان ستـــرگې به کـــم په ژړا سپینې
ته اوس وځه او مـــــا پرېږده اندیښنـــــو ته
خپل تصمیم خپـــلو رنځو، خپـــلو غمـــوته

شـــا او خـــوا رانه چاپیر دی ځنځیـــــرونه
په کــــــړیو کې مې ســــوځي سره اورونه

پښې تـــړلی خـــــوله تـــړلی لاس تـــړلی
د نجـــــــات ورونه له کـــوز و پاس تـړلی

لـــوږی تنـــدی بې ارزښته بې عـــزت کړم
نشتمنـــــې پخپـــل وطن کې بې حرمت کړم

نور به نکړمه ستومان چا ته دماغ خپل
بل به نکړم بې بصرو ته ځراغ خپل

درسام ښځې چې واورېدې خبرې
په غومبورو يې رالړ شوې مرغلرې

پوهېده د ژوند ملګری خومره سوځي
چې له زړه يې د لاسو ګوتی خوځې

نو په پته خوله روانه شوه ستنه شوه
تا به ويلی له غيرته پښتنه شوه

شپې تري يوولی د اوښکو مرغلری
زمان هيری کړی د شپې ترخې خبری

پښيمانه وه له تېرو جنجالونو

را اوچته شوه له ځايه په سوالونو

پولادی زړه يې زهير او نرم شوی
په تسل تسل رام شوی ګرم شوی

د خاوند کوټې ته راغله شرمېدلی
پښيمانه عذر خواه خجلت وهلی

چې کــــته يې ځای خالي دی آشنا نشته
د نادمـــو تلليـــو او ښـــــکو دوا نشته

نا ببـــره سخته ويـــره ورپيـــــــدا شو
لـــکه پـــانه په لړزه او رېږدېـــــدا شو

سودايي مخ په انـــګړ غبـــر ګه شوه بېرته
ترينه ورکـــه شوله لار چې ځي به چېرته

سره لمبه شوه په انـــــګړ راګرزېـــــدله
ګـــــرزيدا کې پخلنځی ته وختـــــــله

چې په وره د پخلنځی يې قـــدم کيووت
د غـــــوايې په يوه رون يې نظر پريووت

په افسوس سره يې وکـــــړه دا خبـــره
بې سنجشه بې له ځنــــــډه نابـــــره

اوه ! دې خوار به چا ته لاس وي غځولی
بيـــا به چـــاته محتـــاج شوی شرمېدلی

د چـــا ور بې دومـــره وخته وي وهلی
څومـــره څومـــره به شرمونو وي ځپلی

وې راشه څه کبــاب ترینه تیـــار کړم
بیـا به ورشم ماشـــومان به رابیدار کړم

ګوندې دی هم له کوم خوا نه راپیدا شي
زمـا بده وزه هېــر کړي پخــــلا شي

چې چـــاړه یې کړه تیـاره غوځېـدو ته
لاس یې وړانـدې که ورانه له پرېکېدو ته

مسخــــــری ورسره پیـــل کړي تقـدیر
غـــوښه نه و په دیـــوال و یو تصـــویر

چـاړه ونښته دیـــوال کې راکـړه شوه
د بیــــوزلې مورا سره د غـــم لمبه شوه

وی یې دغه ابـــدي زمونږ تقـــدیر دی
خـوړو په ځای په برخه کې تصویر دی

د نرګس پیالی یې ډکي په خوناب شوی
د غمــــونو ترانې کتـاب کتـاب شوی
دې خپـل فقـــر ته ژړل لا نا خبـــره
چې د یــــار د مـــرګ ناره شوه نا ببـره

دروازه کې نا آشنـــــا سړی نـــاره کړه
چې رسـام په سر چپه د مرګ پیاله کړه

له خپل لاسه یې لاهو که ځان دریاب ته
د خوني څپو منــــګولوته ګــرداب ته

ښځه ورانه شوه بچـــوړی رابیدار شول
رابیـــدار شول له کټونو راګوزار شول

زړونــه ونیـــول پنجــو کې فریــادونو
سترګې پټې کـړي داوښکو یسلاوونو

له کـــړکیو داروازو او دیــــــوالونو
ســـــر راوایسته دردونـــو او غمــونو

په کـــاله د یتیمۍ لمبه خـــوره شوه
د فلک چـاره د مرګ په وینه سره شوه

زمـــانه په تېـــرېدو وه څـــرخېدله(۱)
د مطبـــــخ تابلــــو بازارته ووتلـــه

په لکــــونو باندې خـرخ هغه اثر شو
یو کـــــاغذ له کـــوټه زرو برابــر شو

هــــر اثر سره چې جوخته قـــرباني شي
بې زواله بې همتـــــا جـــاوداني شي

عــادي خلك قـــــربانۍ نه قهرمان شي
قهرمـان شي چې له خلكو نه قربان شي

دغبرگولې، ۱
۱۳۴۲ـ کابل

۱ـ بله بنه: زمانه په څرخېدو وه تېرېدله

# نیشه موږک

یو زلمـــی موږک له تندې نه بیتـــاب شو
له سوری نه رادبانـــــدې په شتـــاب شو

چې راووته نو ودرېـــــده له ویـــــری
هسې نه چې پیشو پټه وی کـــوم چېرې

یوه شېبه هـــــلته ولاړو حیـــــــرانۍ کې
د پیشو په فکـــرو ذکـــر او پریشانۍ کې

وې څه وکـــرم له تادې نه مجبــــوریم
که خطــر دی که مرګی دی زه معذوریم

یا به ځـان کړم له منـګی څخه سیـراب
یا به کــــرمه دا خــراب ژوندون خراب

خـوار صورت به مې مرګی ته نشانه شي
که اجــل و نو پیشـــو به بهـــانه شي

او که نه سیـــراب به راشمه ســـوری ته
بیــا به نوی لغــــم پــری کمه وری ته

دایې ووې په اوبـــــو پسې روان شـــــو
راغی ودریـــــــده یو مړ ته او ایران شو

وې یې گـوره چې عجب شانې منگی دی
جــوړ له خاورو هسې ندی چې لرگی دی

گوندې وی چې کې پیـدا کړم د زړه تاب
په اوبـــــو د ژونـــــدانه شومه سیـراب

د منــــگی په کمان مړ ته په ختــــو شو
د مړ خولی نه چارچاپیــر په گرزېدو شو

ښنه یې وښـــوییده ولـــوېده د لانــــــدې
په شــــرابو آلـوده شو لانـــدې بانــــدې

په لامبـــو، لامبو راوخــــوت د خم سر ته
په زحمت بانـــدې راووت ترې بهـــر ته

دم درحــــاله سوه نشه وربانـــــدې راغله
د مستۍ مسته ځــــپه وربانــــــدې راغله

ویـــــره لاړه له غیــرته شین زمـــری شو
لـــه غــــرور او حمــاقته لیـــــــونی شو

په بریتـــو کې یې پیــدا د زور شغـله شو
ژونـــد تر پــــایه ورته ښکلې یوه نغمه شو

د لــــذت او تکــــــبر له لیونتـــــوبه
بې آشـــــوبه سریې لاړه تر آشـــــوبه
دی لا نــــاست و چې پشکه را پیـدا شو
د اــــــــکۍ په تاوېدو شو په گـدا شو

وې یې هــــر کله زمــا د ستر گــــو توره
دغــه لمــــر دی راختـــلی له کوم لوره

دغه څنـــــگه یې راغلــــی نابــــــــره
مــــا ړنده کـــړې چې زه نه یمه خبـــره

ستـــــا راتگ ته کــــړۍ شپه ومه بېداره
بخت ته گـــــــوره چې رائحی په رڼا لاره

اوس نوو ایه څه دې حال څه دې روزگار دی
بیا دې کوم جوال ته ایښی دام د ښکــــــار دی

ځـــوان موږک چې و مستۍ بیـــوا که کړی
د شرابـــــو کیفیت بېــــــــاکه کـــړی

پخپـــل ځان یې دا گمـــان شو چې زمری یم
او کـــه نه یمه نو کــــم تر کــــمه سپی یم

نویې پرانیستـــــــــله خوله او درفشان شو
له چـــــاتی نه مخــــــامخ پې ور روان شو

وې یې ځــــــرنگه جــرأت کـــوی پیشو
چې راغــــــلی یې دربـــــــار ته د زمرو
زه زمـــــری یم گـــوره پام که موږک نه یم
پـــروا گیـــره د پیشو او تلـــــــک نه یم

له غضبه که یـــوه چیغه کــــمه پـــورته
څه به کـــاندې وایه تښتې به کــــوم لورته

ته لـــه کـــومه وایه دونـــه جـــــری شوی
چې پـــه مخـــه را روانـــه د زمـــری شوی

دغـــه دومـــره موږکـــان چې تا نیــــولی
پـــه کوم حق او کوم جرأت دې ټول خوړلی

که مې کېښــکو دی له خولی به دې باران شي
تــرې راتوی به په زرگـــونو موږکـــان شي

بـــايد وبـــاسي تـــوبه او پښيـــمان شي
کـــــلی پرېـــږدي او د غـــرو پلو روان شي

کنـــه ژامې به دې هسې کـــــړمه مـــاتې
چې عبـــرت شي ټـــول عالـــم ته ځنې پاتې

لوی جهـــان به درته تنـــگه يو کړی کړم
لـــه غضبه به دې يـــوه گـــوله مړی کړم

وايـــه ژر شه اې بـــــــدبخته بې ادبــــه
ځـــواب راکه کنې پـــرې به دې کـــم ژبه
تأخيـــــر مه کوه پښـــو له راگـــذار شه
وعـــــده راکه له ظلمـــــونو توبه گـــار شه

له مـــــوږ که چې پشـــو واورېـــدې باتې
وې يې ستـــا له خـــولی رااوری دغه گاتې

وې يې هـــو احمقه چوپ شه زه زمری يم
له غصې نه ســـــره لمـــبه يم ليـــونی يم

دا ته نه ويني صــــــورت مې ټـــول رپيږي
له غضبه مې مـــــــاغزه درته اېشيـــــږي

پيشو وخنـــــدل موږک ته وې يې جــــانه
راته ښکـــاري چې موږ شوی يې له ځــانه

دا قـــدرت دې وايه څنــــګه پيــــدا کړی
راته ښکـــــاري پريشـــان خوب دې ليــدلی

ته د نورو موږګـــــانو وکــــالت کــــړې
وايه ځـــــــان به له ما څنګه ســلامت وړې

اوس به وګــــوري د ژونـــد وروستنی لوبه
رابيــــدار به شي له خپــــله درانه خــــوبه

شپېه وروسته نيشه ولاړه مـــــوږک سم شو
ترې چـــاپيره د ژونــــدون د بقـــا غم شو
پيشو وويـــل اوس وايه څه فــــــرمان دی
مخـــاطب زما زمـــری که موږک جان دی

مـــــوږک وويـــل ما بد کـــړي او خر شوم
خـــر خو شه وي زه تر خـــره ام لا بتر شوم

شرمسار يمه مــــــــا وبخښه اميـــــــره
له دې لـــوی بې ادبې له دې تقصيـــــــــره

ستــا مقـــام زما تر جـــرمه ډېر اوچت دی
زمـــــا په پلو کې ستا له فیضه حـرکت دی

په دې کـلی کې چې چېــــرې مور کان دی
همه واړه لاس تـــړلی بنـــد گـــــان دی

چېــــرې زه او چېـــرې ته عـــالي مقـــامه
خـــوله مې مـاته کړی بې ستـــا له احترامه

پیشو وویـــــل خبــــرې دې تـــرخې وې
خو زه پوهېـــــــږم د تا نه وې د نیشې وې

مگـــــر زه ستـــا په نیـــووو یمه مـــاموره
پخپـــــل قتـــل به مـــا وبولی معــــذوره

فکر و که چې دا مـــرگ ندی خمـــار دی
ژوند هر چاته یوه نیشه ده بیا قمــــــار دی

د لیندۍ ، ۸
۱۳۴۳ ـ کابل

# شکمنه مینه

د لرغونو زمانو په افسانو کې
د بخدې په اوسنیو ویرانو کې
راته کړی یو بزګر سړی قصه ده
د یو ښکلی ژوند غمجنه خاطره ده

وایې هغه وخت چې دغه ښار آباد و
د نړۍ له توفانونو نه آزاد و
پدې سیمه کې استوګن و یو ځوان
یو بې ساری، بې رقیبه پهلوان

تا به وې د صورت غوښه یې پولاد ده
جګه ونه یې له نسله د شمشاد ده
د غیرت آوازې تلی په ملکونو
هم یې ناسته د ځوانۍ مینه په زړونو

مګر ځوان زړه یې له لاسه ووتلی
د یوې پیغلې نجل په مینه یې بایللی
معشوفه یې اوسېده په بخارا کې
د آمو د زورور سین هغه خوا کې

عاشق ځوان په هره مياشت کې يو يو وارې
لنـــــــډولى بخـــــــارا ته اوږدې لارې
پريکــــــول يې بې اوبـــــو بيابــــــانونه
د يخنۍ په شپـــو کې واورې بـــــارانونه

بې گــــدره به آمــــــو غيږې ته پريووت
له ځپـــــو او له گـــرداب سره به کيووت
په وحشي سين به يې وروړل يرغلــــــــونه
ايلـــــــول به يې سرکشه سيــــــــلاونه

پولادي لاس يې په هـــر شئ بانــــــدې بر و
که دريــــاب، که بيابـــــان و او که غــر و
هيـــــــځ يې نه لـــرله ويره، اضطـــــراب
تـــا به ويلـــــى چې موجـــونه او گرداب

د ده مخــــکې ذليل شوى محکــومان دى
بې ارزښته او نــــــا چيزه غلامـــــــان دى
په رگــــــو کې خوځيــــدلى گرميويني
د هيچـــــا پــــــــروايې نه وه بې له ميني

یوه ورځ له ورځـــو راغی بخــــارا ته
زړه یې کېښــــود پښو د تمنــــا ته
نیمه شپه د آسمــــاني حصار د پــاسه
بې له ویري، اندېښنې او بې وســــواسه

رادننه شو د میني منــــزلــــګا ته
زړه یې وسپـــاره رنــګيني مشغولا ته
جنتي شپه د څـــوانۍ په سره لمبو کې
په ګیـــلو کې، په قصو کې، په بوسو کې

په مســکا کې، په خنــدا کې، په ژړا کې
د آسمـــان د رڼو ستـــورو په څـــلا کې
په ورو ورو د سبـــاوون ساحـل ته تلله
د آسمـــان په شنه دریــاب کې بهېدله

خو سپېـــدو تر تورې پردې لانـــدې
آخــر ستــر ګې واړولې لانــدې باندې
آخــر هغه ښایستــه شپه سبـــاوون شو
د وصـــال پلـــوشه جـګه شوه بېلتون شو

وخت د دې شو چې بلخي زلمی جلا شي
د بخـــدې خوا ته روان له بخـــارا شي
خدا زده څه يې په زلمی زړه کې پيـدا شول
چې شونډان يې راغنچه شول په مسکا شول

ناڅـاپې يې نجـل ورته وويل اې ګـــــله
اې زمـــا د زړه شهۍ د عشـق بلبـــله
که هرڅو ستا ښکلی مخ يو بل څراغ دی
خو افسوس چې پيدا شوی پکې داغ دی

هسې نه چې ستا د ګــلو باغ تالان شي
زمـــا د مينې ابـدې بـــرجل ويران شي
دغــه وار چې ځې له ښکـــلی بخارا نه
د عشقـــونو وصـــالونو له مـــاوا نه

ګــوره پام که ځـــان وانه چوې لامبو ته
د جهيـــون خونړي سين مستـــو څپو ته
ستا د مينې په باغ ګډ د شک تالان دی
دا ځـــل هغه آمـــو ندی يو بل شان دی

ته د مینې په بېړۍ راتېربدلې
چې په موج او په توفان به برېدلې
اوس د شک په ځپوډوبه شوه کشتۍ ستا
د دریاب کړۍ به ونیسي مړۍ ستا

ګوره پام که اې زما خیالي دلبره
هسې نه چې په سین ګډ شي نابېره
د سپېدو چرګانو وکړل آذانونه
ځوان روان شو مات زړګی ساړه آهونه

بله شپه بیا د جیحون دریاب ته راغی
د اوبو یوه ژور تالاب ته راغی
ده وې ګوره د یار زړه کې به څه تېر و
چې زما زړور زړه ورڅخه هېر و

دې ګمان کاوه چې ګوندې دا دریاب
د آمو مستې څپې او یا ګرداب
زما د او سپنو دامنې به کړي ماتې
زما د مینې خاطرې به شي میراتې

نــه نه ! زه هسې بـــزدله میـــن نه یم
زه په مینه کې په مــــال او په تن نه یم
زمــــانه به خامخــــا زما فرمان وړي
سین او غـر به زما سورى ته امان وړي

دایې و وې ناپایــــوه سین ته پریـــــووت
له جیحون سره په جنګ جګړه کې کیووت
مــــــګر دا ځـلى بل سین بله څپــه وه
بل ګـــــرداب و بله لـــــوبه بله شپه وه

د دریـــاب ګېډه کې بل خپل انقــلاب و
په اوبـــو کې بل قـــوت بل اضطـراب و
ایشېـــدل د دریاب زړه کې غصبــــونه
د څپــو له خولې وتل سرکش ځګــونه

قهـــرجنې زخمي غېـــږه کړله خلاصه
د اوبو سیلاب یې پرېښود پې د پـــاسه
پولادې متې یې تـــاو شوى یو تر بــــله
خو تېر وخت تکرارېده نه بیا هېڅکــله

پهــلوان زلمی خــوراک شو د جیحون
عشق و نه زغمـــــل نازونه د جنـــون
د عشق کار کې چې رښتینې صفا نه وي
سر ایستــــل ترېنه آســانه سودا نه وي

مجنـــون ځکه پایښتې جـــاوداني شو
چې د خپـــلې لیـــلې مینه کې فاني شو

د لیندۍ، ۱۲
۱۳۴۱ ـ کابل

## ورى او ليوه

مــازيگـــر و زيړى لمــــــــر په ډوبېـــدو ؤ
له مشـــــرقه نرم بـــــاد په چلېــــــدو ؤ

په ورشو کې د شنيـــــلو وړمه خـــــوره وه
د شفق لمــــــن د وينـــــو په شـــان سره وه

هــره خوا راپـــورته شوى وو گــــــلونه
د بيــــــديا په لمـــــن پلن وو سره لالــــونه

د سنځلو بوى خـور شوى و بيــــــــديا کې
د شنيلى فرش غوړېـــــدلى و سحـــــــرا کې

شين آسمـــــان تانــده هوا ښايسته غــــرونه
په هـــــــره پوله د خـــــاتولو ځراغــــــونه

يو رمـــه له لـــرې ښکـــارېده په تلــــــو وه
له ســـــارا نه آبــــــادى ته په وتـــــــو وه

په ورشـــــو کې له رمي نه پـــاتى ورى و
برگــــــکى و پستـــــکى و گــــــــلالى و

ببـــر سر اوږدې غـــوږونه ښیښې ستـــر ګې
سـور پوستکې د مـخ پېښې پې سپینې غبر ګې

آزاد ګـــــرزېده نه شپـــون و نه رمـــــه و
مه یې زړه کې له بـل چـــــا اندیښنه و

نابېـــــــره په یو ځـــل په نخېـــــــدو شو
له خــــوښۍ به په خیـــز او په ټوپـــو شو

بیا به منـــډه کړه او جګ ځای ته به وخوت
آزاد ډاګ به یې په مینـه مینـه وکــــوت

یو ځل تــږی شو اوبو په لــــــــور راغی
د لښتـــی مستـــو څپـو په لـــوری راغی

په ژوره زړه راښــــــکته شو اوبـــــو ته
ده لا شـــــونډې سمـــولی خپلو څښو ته

ناڅــــاپي یې تر غـوږ سخته یوه غـــورا شو
په مــــــاشوم صورت یې تبه راپیـــدا شو

چې کـــاته یوه لیـــوه ولاړ و پـــــور ته
دزاړه سرې ستـــــر ګې یې ورته ولې اورته

سپینې داړې یې چـــــــړې د قصـــــابانو
تـــوره خوله یې لـــــکه ګور د دوزخیانو

ورې چې ولېــــده دا حـال له حاله ووت
خپـل اجل یې روغ پخپـــلو سترګو وکوت

لیـــــوه پورته په غـــــــرور ورته ولاړ و
ورې لا وخته له خپـــل ځان جهـانه و لاړو

د ورشـو سنـــدرې هېــر شوې ورشو کې
د ټوپـــو خونـــدونه لاړل په خوبــــو کې

لیـــوه ورې ته ویل ودریــــږه مه ښـــوره
دا اوبـــه دې ولې خـــــړې کړلې ګـــوره

زړه مې غــــواړي درنه پريـکم غوږ او ژبه
اې رزیــــله بې حیـــــا او بې ادبــــــــه

ورې په عـــــــذر او عــــاجزۍ او په ژړا
ویــــــل پـــــــــلاره زه اولاد یمه د تـــا

زه به څنــــــګه ستا اوبه درخـــــــړومه
یــا به خـــــاورې په هغـــو درګــــډومه

کاشـــکې ړوند شمه پخپـــلو دواړو سترګو
که دا کـــــار وکم یا ګـوډ شمه په غبرګو

دا اوبـــه خو ستـــا له خوانه رابهېـــــږي
زمـــــا په لـــوري را روانې دي تېـــرېږي

ښـــایې پورته کـــــوم پسه وي بې ادبــــه
کـــوم سپین ستـــګې بې حیـــا او بې نسبه

خبرې کـــړې یې اوبه وي ستـــاسو څښو ته
کـــه رخصت وي زه به درشمه کتـــــو ته

لیــــوه وخنــــدل او وې وې نابــــــــره
اې سپین ستـــــــرګیه بې حیـــا او غټه خـره

ته لا مـــــا ته ځنــــګه وایې دلیـــــــلونه
مـــــګر ما ته معـــــلوم نه دي دا چـــلونه

اوس به ستـــا د سپین ستـــرګۍ سزا درښیم
زه لیـــــوه یمه کـــــم عقـــــله پسه نه یم

خـــــوار کی ورې یې ونیـــــو له غـــاړې
د مظـــــــلوم په مرۍ ځبنې شـولې داړې

ظالمـــان همیشه خوري د مظـــــلوم غوښې
په کمـــــــزور د زورور منــــــګولې خښې

د میزان ، ۹
۱۳۴۱

# درې غوښتنې

يو لـــــر گبه چې غريبۍ و کــــــړولې
لــــورېږې تنـــــدې په اورونو اړولـــــې

چــاودو پښو يې پـــــارولې وو دردونه
خـــوږمن زړه يې خـــوځولې وو موجونه

تمـــامي عمـــر له خپـــله بخته تنـــګ و
له خپـــــل غم او غــريبۍ سره په جنګ و

يوه ورځ دلوی ځنـــګله په لور روان شو
د چــــرتونو په دريـــــاب کې لالهان شو

لار په منـځ کې مخــامخ شو يو سړی ته
يوه سپين ږيری شان بوډا ته ګــــلالی ته

په پوښتنه کې دستي سره آشنـــــا شول
په خــــواله شول د دردونه په افشا شول

لـــر گبه پرانيستې د زړه غـــــوټې بوډا ته
بــــوډا وژړل بدمــــرغي بې نــــوا ته

بېـــــوزلان ښه یو د بـــــل په ژبه پیــــږي
یـــــو د بـــــل لپـــاره سوځي او کـــړیږي

لـــــر گبانه د لـــــر گبنــــو سره ژړای شي
بزگـــــــران د بزگـــــرانو خپـلېدای شي

بـــــوډا وويل لـــــرلابه ته گـــرانه وروره
یـــوه لاره درته ښیـــــــم ما ته گــــــوره

دې ځنـــــگلو کې یو فقیر مشکل کشا دی
لـوی عـــارف دی ستا دردونو ته دوا دی

نامـــــرادان رسوي خپـــــــلو مـــــــرادو ته
دولتـــــــــو ته مقامــــــو ته معشوقــو ته

کـــــال د مخه یو جونکی له ما نه ورک و
دغه کـــــار ته زمـــا عقـــــل هك او پك و

چـــا راوښــــــوده درك د د غه پیــــــــــر
چې خدای دوست دی او عارف دی او فقیر

زه روان شوم په اخـــــلاص د هغه خوا ته
د امیـــــــد مخه مې خــــــلاصه کړه رڼا ته

لا زه نه وم رسېـــدلی د ده ځـــای ته
لا مې خـــاوري بادولی په سر خــدای ته

ناځــــاپي مې د ځنـــګله په یوه خوا کې
د ماښـــام په تور بخــونه شان رڼـــا کې

تر نظـــره یو بـــوده په خوځېـــــدا شو
چې کاته مې زمـــا جونـګی دی راپیدا شو

دا فقیـــر به د تا کـار هم ګوره سم کړي
ته خـو ورشه همـــاغه به دې یو غم کړي

د لــــرګبه په سترګو پړق شو او رڼـــا شو
د ژونــــد هیــــله یې په زړه کې راپیـدا شو

وې یې ځـــان سره چې خامخـــا ورځمه
دا ستـــــانه سړی به حتـــــماً ننـــــګومه

ګونــدې وي چې بهـــانه راته پیـــدا شي
کـــــومه پټه خـــــزانه راته پیــــــدا شي

دم درحال یې خپل سپین ږیرې بوډا هېر شو
حرص د زرو او د مـــال ترینه چـــاپېر شو

بې تکبیــــــره بې دعـــا او بې ســــــلا
بې پوښتنـــــــې له بوډا شو راجـــــلا

په تلـــوار تلـــوارې راغی د پیـــر ځای ته
د غمـــونو او دردو مشکـــــل کشای ته

چې کاته یې پیر خاموش په ځای کې ناست دی
استغراق کې خپـل خاوند لره په خواست دی

که جهــــان وای همه واړه ښوریــــــدلی
دې به نه و له خپـــــــل ځایه خوځیـدلی

خــوار لړګبه همالته تېر کړل درې کلونه
رایې نه وړل د مـــــــراد غنچې ګـــلونه

پیر هماسې پخپـل ځای ناست و سر خوړی
تـــا به وی چې سم و دم دی لــــکه مړی

آخـــــر یوه ورځ د لړګبه صبر تمـــــام شو
نا څـــاپي یې د خپـل کور پلــو ته پـام شو

ور په یاد شول خپـــل بدمـــرغه اولادونه
خپـــل د درو کـلو بې ځایه خدمتـــــونه

لــکه مار له ډېره درده په ځـــای تاو شو
له غصې په مـــلا غبرګ شو تاو راتاو شو

په دې وخت فقیـــر له خوبه بیـــدار شو
قهـــرجن لرګبه ته هسې په ګفتـــار شو

وایه څه غـــواړي چې درکم مـــرادونه
عـــزتونه خـــزاني که ثوابـــونه

لرګبـــه ووي له غضبه خـــــوټې راکه
دامې بس دی خـــــزانې ځانته بسیا که

فقیـــر ببرته خپـــلې سترګې کـړلې پټې
د لـــرګبه تمـام وجود شو خوټې خوټې

شونډې خوټې پوندې خوټې سپوږمې خوټې
پـــوزه خـــوټې وروځې خوټې پښې خوټې

څو لـــرګبه له غوصې کیناست او آرام شو
سر ترپـــایه پې د خوټو کـــار تمـــام شو

غریبـــــګوټې وی توبه مې له دې ګټـــو
چې تر خوټې پورې ډوب شومه په خوټو

اوس به ګـالم بیـا د دري کـلو غمـونه
تېـروم به په چوپـړ کې تاړ کـونه

بیـا به ژاړوم دې ناپوهه لـوړ مقام ته
پـام بې اړوم د خوټـو سرانجـام ته

په همدې همدې کې تېر شو درې کلونه
د لـر ګبه انتـظار وسپړل ګـلونه

قلنـدر له استغـراقه رابیـدار شو
چې بیدار شو نو مخلص ته په ګفتار شو

اې زمـا خـاصه مخلصه رانه غـواړه
یا دنیـا یا آخـرت یا دغـه دواړه

لـر ګبه وویل دا خوټې رانه واخـله
دا د ننـګ او شرم ګټې رانه واخـله

پیر سر ښکته که او بېرته پخپل ځان شو
لـر ګبه بیا له خپـله سواله پښیمان شو

د ده خوټې هـم د نورو سره ولاړې
سپیـره پاتې شو غمـوته جینګې داري

بیـا یې و گـــالل د درو کــلو غمــونه
د ایزکــــــو عـــذابونه کــــړاوونه

پیــر پخپـــله وخت بیـــا سر اوچت کړ
په لرگبه یې تمـــام هسې خپل حجت کړ

وایه څه غــــواړي چې دریې کم غریبه
اې کـــم بخته دربــــــدره بد نصیبه

لرگبه ووې چې له دې شرمه مې خلاص که
غلـــط نشي خپــلې خوتې را په لاس که

نور به نه غــواړم له لویو خلــکو گټــې
که مې یو وارې تر لاس شي خپلې خوتې

د تلی، ۱
۱۳۴۱ ـ کابل

# تقلب

یو کــــوچی و چې شودې یې خـــــرڅولی
نیـــــــــمايي به یې اوبه یې گــــــډولی

په ټگــــــۍ او تقــلب کې دولت من شـــو
په جــــاهل قـــــوم کې لوی شو عزتمن شو

څلور میـــږې یې په کم وخت کې رمې شوې
له دوو اوښـــو نه یې جــــوړه قافـــلی شوې

ډېر نیـــــږدي و چې د نورو غــــــلو په شان
یو ستــــــر مشر شي د قــــــوم او والا شان

یوه ورځ دغه ســــړی ته په بـــــــــازار کې
کـــــار پیدا شو او روان شو په تـــــــلوار کې

مـــــاسپښین چې بیـــــرته ووته له ښــــــاره
د شــــــدوبې له پیســـو سره سرشـــــــــاره

ناڅاپي سترګي ولوېدې په غرونو
پاس په غرو کې د اورو په انبارونو

ښکارېده چې پاس په غرونو باران راغی
ویروونکې او بې سارې توفان راغی

په اورو کې باران کړلی غاښ چیچنې
وریځې پلنې شوی د غرونو تر لمنې

د آسمان دروازې خلاصې شوی اوبو ته
غرونو کوز کړل سیلاوونه ډوبېدو ته

ماښامی کوچی په ویره اندېښنو کې
رانېږدې شو خپل ټاټوبی ته غمو کې

راالوتی وو له غرو ساړه بادونه
خواره شوی وو د وریځو تور فوځونه

یو ژیړ چکه سپوږمۍ په راختو وه
یوه غمجنه شان رڼا په خورېدو وه

عاقبت راغی کوچی خپلې ورشو ته
خپلې سیمې د کېږدیو او رمو ته

چې کــــاته يې د همه وو کار تمـــام دی
که رمې دی ، که پيسې دی ، که يې کام دی

نه رمــي شته، نه د کــور نــام و نشان شته
نه يو څــــاروی نه يوه ننبه د انســـان شته

هــک او پــک شو ســايې ونښته سينه کې
اوښــکې وچې شوی د ستـــر ګو آينه کې

لـــکه بت بې حرکته په ځـــــای ودرېـد
بيــا بې حس شو لکه زوړ ديوال راولـــوېد

چې په حـــال شو نو په منډو منډو سر شو
خـــدای دربار ته هسې په شـــور و شر شو

مـــا خو يو پـل نه و ايښي څه بېځـــايه
دا اوبه له کـــــومه راغلي لويه خــــدايه

هلته چېـري کـــوم بوډا و ژونـــدې پاته
ورو ورو راغی رانيــږدې شو د ده خواته

ويـــلي دا ستـــا د شودو اوبه دي وروره
ستا عمـــــل دي په رڼــو سترګو ګوره

تا او به چې په شودو کې خــــــــرځولې
هغه واړه غــــــونډېدلي زياتېـــــــدلي

شولې زيــاتې دا سيـــلاب يې را روان که
ستا د لاسه يې زموږ کورگی هم وران که

د تلې د مياشتې ، ۳
۱۳۴۱ـ کابل

# لیوه

یو لیـــــوه و له تازیانــو تښتېـــــدلی
د یوه کـــلی په خــوا راغی سا نیــولی
خــوار له ډاره کـــنې پښو کې و نیولی
چونګېــــده او د مــاشوم غوندې ژړلی
ډېر بې حـــــاله وارخطـا او منقلب و
لار ترې ورکه وه بې حــــده مضطرب و
د ښکــــاریانو هـــره خوا پسې هاها وه
بــده پېښه خطــــرناکه مشــغولا وه
تــور ګردونه ورپسې وو د تـــــاویانو
پسې لیـــــکه یو پلټن د هلـــــــکانو
مـــاتېدو ته یې خـــوني غاښونه سم وو
رسېــــدونکې یې انجام ته نور ستم و
خپـــلو بدو له هر خــوا په مخه کــړی
په هـر ګــام کې یو ټوپک په زخه کړی
سایې نښتې وه «امـان امان» یې وغوښت
یو ساتلی او مصئون مـــکان یې وغوښت
عـــاقبت د کـــلی لارې ته راســـم شو
از چې کـــلی ته نږدې شو زړه یې تـم شو

دایې خــوښه کړه چې ننه شي کوم کور ته
لاره وتــــړي د پسیـــــو شرو شــــور ته
خـــو تـــــــړلی و له بدمــــرغه ورونه
دروازو ته وو لــــــــوېدلی ځنځیـــرونه
په ځغستــــــا شو په کوڅو کې کته پورته
په دې هیـــــله چې ننه شي کــوم کورته
د ښکـــاریانو شور و شر په زیاتېــــدو شو
د لیـــــوه تمام صورت په لـــــرزېدو شو
ښـــایسته نړۍ یې غــــاړه کې کړۍ شو
یوه شېبه یې په غمــــــــونو کې پیړۍ شو
هلته نــــاسته په دیـــــــوال یوه پشو وه
په کــــــوڅه کې د لیـــــوه په نندارو وه
د لیــــــوه نظـــر چې ولــــوېده پیشو ته
خـــــوله یې پرانیسته زاریو او عــــذرو ته
ای بې بې پیشو تـــــــــلوار که راته وایه
چـــــاته ننگ یوسم یــــوه سمه لاره ښایه
ته پوهېـــــږې په ما څه سختې تیـــرېږي
د اجــــل چاړه مې ستونې ته خوځېـــږي
دا د سپیـــــو او ښکـــــاریانو چې ها ها ده
بـــــل څه ندي دا په مــــا پسې غوغـــا ده

چېرې شته دی دغه کلی کې یو ځوان
کوم زړه سوانده او شریف شاني انسان
چې ما وساتي له سپیو او تازیانو
امن راکړي له دې سختو ظالمانو
هله وایه وخت تیرېږي چې ورځمه
اجل نیغ راته ولاړ دي او زه مرمه
پسشو وویل سورګل یو ښه انسان دی
د هغه کور هم پنا دی هم امان دی
لیوه وویل هغه ته مې مخ تور دی
یو پسه مې ترې خوړلی په ما پور دی
پیشو وویل چې ورشه نو انځر ته
د دې کلی ننګیالی او زورور ته
لیوه وویل هغه ته نشم تللی
یو سیرلی مې له هغه نه تښتولی
ګناکاریم ګناکاریم ګناکار
خدای د پاره راته ښیه بله لار
پیشو وویل نو هله تلوار که
ځغله ځغله د زمرک کاله ته لار که
لیوه وویل یو وری مې ترې داړلی
دا لا څه یو خوسکی مې ترې خوړلی

پیشو ووې چې نو څوک به در په لاس کـــم
گمان نه کوم چې اوس به دې زه خلاص کم
تا پخپـــــــــله د نجـــات ورونه ترلـــــی
څوک وژلی، څوک داړلی ، څوک خوړلی

د سلواغی ، ۴
۱۳۴۱ـ کابل

«موضوع د روسی فلکلور نه اقتباس شوېده»

# زوړ حمام

راځــــــــر گند شو يو ورځ يو دردېــــــدلى
يو انسان ، يو مـــــــــرور، يو پارېــــدلى

د ظلمــــــــــونو ناروا وو په اور ســــــوى
د نظـــــام او منتظـــــــم دودالـــــوى

په ځـــــــوالى کې له غمـــونو کمان شوى
مــــــريض شوى زهيـــر شوى ناتوان شوى

که آسمــــان و او که ځمـــکه وه کنځل يې
که کشـــران وو که مشـــران وو يـــادول يې

له خـــــائنـــو امـــــرانو يې شکــــــوه وه
له انسان غـوندې ديوانـــــــونه شکـــوه وه

آزرده و له مفســـــــــد او له فســـــــاده
له راشى نه ، له خـــــــاينه ، له جـــــلاده

له خپل کـــار او خپل دفتـــر نه يې زړه تور و
تا به ويلى درست جهـــــان ورباندې اور و

رانه وې غوښتـــــل يو كــــار ورته پيدا كړم
يو شـريف شانې روزگــــــار ورته پيدا كړم
هسې كــــار چې له فساده يې كــــار نه وي
له ليـــــوه سره يې واك او اختيـــار نه وي

مـــا چې واورېـــد دا ناشـــونې شان مقصود
زړه مې وســـو په دې پاك ساده مـــوجود

چې ته گـــوره دې د څه شي اميـــدوار دی
څـــومره پاك څـــومره ساده څه بې آزار دی

دا مـــــاشوم لا منتظـــــر د صفـــايي دی
په مـــــاښام بانـــدې گمـــان د سبايي دی

په كـــــرار او نرمۍ مې ورته ويـــــــلی
دا دفتــــــرې واړه يو دی نه دې بېــــــلی

په هر ځـــای كې هغه يو شـــانې رنگريز دی
كې هرات دی كه غزني دی كه گـــرديز دی

دې لپـــــاره چې دی پوه كمه تمــــــام
ورتـــه سر مې كــــړه قصه د زوړ حمــــام

«یو سړی د شپې شیـــــطان و غولـــولی
نیمه شپه له خپـــــــله کوره رتوتـــــلی

ضرورت یې و لمبـــــا او استحمــــام ته
برابـــر شو یوه زاړه غــــوندې حمـــام ته
وردننـــــه شو دهلیـــز ته بې وســــواسه
ځـــان یې ســـم که لوځېـــدو ته سمدلاسه

تن یې لـــوخ که، لونګـ یې وتــــاړه د پاسه
چې شرنـــــــګا شوله اوچته له هر تـــاسه

په لینـــــدۍ د هر ګنبـــدې کې نارې شوی
له هر وره نه راوچتــــې نغــــــارې شوی

پنجــــرې یې د بـــلاوو تورې خولې شوی
دیـــــوالونه د وهمــــونو قافـــلې شوی

په وهمــــو کې لمبـــــاځي ته شو د نـــنه
ګـــوندې هلته د بـــل چا وکـــړي لټنــه

په نظـــر کې یې یو بـــل سړی پیــــــدا شو
چې پیـــــدا شو نو یې زړه پې تســـــلا شو

ده لا ځیـــــر ، ځیـــــر د ملګری تماشا کړه
چې کــــاته یې دواړو ستــــر ګویې رڼا کړه

څو ګـــامونه ترې رالــــرې شو په زغـــــرده
چې کـــــاته یې د پښو تـــله یې وه ګــــرده

تـــا به وی د پښو تــــله یې د پیـــــــل وي
نیــلی ستر ګـــــی یې کاسه ، کاسه د نیل وي
بــل څوک نه وو او حمـــــام واړه خالي وو
نه یې ســـوری ، نه یې نښه ، نې کـــــالې وو

په دې تش حمـــــام کې ویره ورپیـــــدا شو
په تمــــام صورت یې ګــــڼه رپږدیـــدا شو

زړه یې واچــــاوه سړی او وارخطـــــا شو
په ورو ورو په ویــره ویــره راپه شـــــا شو

د کـــــالیو اغوستـــــو کوټې ته ستــون شو
بېچـــــــاره له ډېــرې ویرې نه زبـــون شو

د حمـــــام یو خدمتـــــــګار شو راپیـــــدا
لیــــــږ را تم شو، څه یې زړه شو تســــــــلا

خدمتـــــــګار تې هسې وویـــــــــل دواره
اوس مې زړه چــــــاودلی و لـــــه داړه

په حمـــــام کې راته ښکاري چې پیري دي
پښې ګـــــردې دي پخپـــــله سم سړی دي

لا پخــــوا وم وېـــرېدلی اوس بتـــــر شوم
په ناولی ځـــــان راووتــــــم بهـــــر شوم

د حمـــــام خــــادم ویران شو له خنــــــدا
وې یې داسې خـــــو به نه وي لـــــکه زمـــا
دې چې ځیـر شو، د ده پښې هم رفېدې وی
د پیــــــریانو غـــوندې ګردې وی کلچې وی

په هـــــــدو کو کې یې ننــــــوته ویــــــره
ســـــړه تبه یې په زړه شـو رابرسیــــــــــره

د نــــایي کــــوټې ته راغی نیــــــم عریــــان
رنګ الوتی، ســـــــا نیولی او ستـــــــومان

خپـــل آشنا نایي نــــارې کړې پې چې ولي
چېـــــرې تښتي څه له دانـــــګي ولې ځغلي؟

وې يې مه مې پوښـــــته بده واقعـــــه ده
په حمـــــام کې د پيريـــــانو هنـــــګامه ده

راتـــــول شوی په جهان چې څه پيريان دي
پښې يې ګـــــردې ته به وايي چې پيـــلان دي

ډم په بريتـــــو کې ملـــــګری ته مسکې شو
لـــــونګ يې لـــــري که پښو نه او پيـــری شو

وې ګـــــوره زما د پښو غـــــوندې خو نه وې
هسې ګـــــردې هسې غونـــډې منډې شوې !

ســـــړی وډار شو په چيغـــــو او سوران شو
د حمـــــام آخـــــري وره ته را روان شو!
د حمـــــام خاوند چې وليـــده دا منـــــډه
ترغـــــاښو لانـــدې يې ونيوله شـــــونډه

وې خيـــر دې وي ورور‌ه چيـــــرې تښتي؛
دغـــــه ولي هسې لـــــوڅ او کالی نغښتي!

وې مه پوښته زاره مې په چـــــــــاودو ده
روغـــــه سا مې له هيبته په ختـــــــــو ده

د حمـــــام په منځ کې واړه گـــرد پښې دي
که نايــــان، که خــــــادمان، که سړي دي

د حمـــــام خاوند دلـــــونگ په راښکو شو
په خنـــــدې شو د پښــــو په لوڅــــوو شو

د ســـــړی چې په گـــــردو پښو نظـــــر شو
ســـــدېې لار، له تـــــورو خـــاورو برابر شو »

مــــا چې خــــــلاصه کړه قصه د گردو پښو
مخــــــاطب شو ناڅـــــــاپې په غـــــرېدو

وې يې هــــــــا سړی خو يوه شپه څورېــدلی
له څــــــلورو گـــــــردو پښو نه ويرېـــــدلی

مــــاته گـــوره چې بنـــدي يم شا مـــــــدام
څــــــوروي مې گــــــردپښې عــــــلی الدوام
هـــــره ورځ وينـــم سلـــگونه شيطــــــانان
بې غـــــــــوږونو بې نظـــره بې ايمــــــــان

څـــــورو.ي مې پـــاروي مې خوځــــوي مې
ژړوي مې ويـــــــــروي مې ســــــــزوي مې

۱۲ر۱۲ر۱۳۴۲

# ویش

یو زمری او یو لیوه او یوه ګیدړه
مخامخ شوو په ځنګله کې مخ په ځوره

زمری وویل لیوه ته « سریاوره ! »
اې زما خوږه ملګریه زړوره

داله لوږی پیدا شوی چې وسواس نن
باید ورسېږي پای ته زموږ په لاس نن

ته نن لاړ شه د رمو په حال خبر شه
کوم چاری یا پشیلی ته برابر شه

ګیدړ ګله دې کوم کلی ته ځان سم کړي
کومې چرګې ته دې جوړ د نیو چم کړي

زه که څه هم نن بې وسه او ستومان یم
ستاسې غم خورم په غوایې پسې روان یم

زوروور زمـــــرى چې وکـــه دا فــــرمان
گيــــدړ وغـــــــوښته له ده د سر امــــان

وې يې څنـگه دي فرمــان وروسته له ښکاره
په کــوم ځاى کې بيا يو ځاى شو له سرکاره

زمـــرى وويل همـــــدلته راپيــــــدا شئ
په همـــــدې ځـــاى کې زمـا حضورته راشئ

په همدې ځاى په خوښۍ کې شريــکان شو
بيا به خوځـــــو بروجنــگلوته به روان شو

وروسته درې واړه دريــــــو لاروته سم شو
دم در حــــاله د خپل ښــکار په فکر او غم شو

ورځه وروسته چې له ښــــکاره راستانه شول
سره کېنــــاستل د زړونو په خـــواله شول

زمــــرى وويل ليــــوه ته « حوالـــداره !»
دغه غــــــوښې راتقسيــــم که ښيه لاره

ليـــــوه وويل ســـــلطان ته حق معلوم دى
چې زمــا څه، د گيـــدړ څه د ده کوم دى

ډنګر چرګ د ګیدړ خان، پسه زما دی
دغه غټ مزی غويي واړه دتا دی

په دې ویش به د غلام زړګی مسرور شي
که د تاسې لوړ حضور لره منظور شي

د زمري سپوږمی له قهره تکې سرې شوې
سترګې ننوتې مخ کې او وړې شوې
خوله یې پلنه شوه راویې وتې داړې
له غضبه یې ځګونه شولې ناړې

سره تاو شو پخپل ځان کې او ببر شو
له غصې نه سور خطر شو لا بتر شو

له لېوه نه یې سر غوڅ که په یوه منډه
د ګیدړ لکې له ویرې شوله غونده

له هیبته ګرده یو موتی وړی شو
سره ننوته، نیمه شوه کمکی شو

په دې وخت کې زمري وویل چې وایه
په دې ویش کې دتا څه ده خپله رایه

گیدړ وویل سلطانه ویش روښان دی
حقیقت ځلانده لمر دی او عیان دی

چرګ د تا سبا ناری، پسه غرمنی دی
دا غویې ستا د حضور ماښامنی دی

زمری وخندل او وې ویل ګیدړ جانه
دا انصاف دې پیدا کړی له کوم خوا نه

دغه ویش چې ته ما سره منلی
دغه عقل وایه چا درته ښوولی

گیدړ ووې تا چې پرې د لیوه سر که
شاهه ما له هغه زده دغه هنر که

څوک چې مشر سره ویش کې چالاکي که
له خپل سر سره جفا که بېباکې که

د حمل، ۱۵
۱۳۴۳

# د عشق افسانه

**( له یوناني روایاتو څخه )**

یوه ورځ خـــــدایان له سولې څخه تنګ شول
د جنــون او میني خــدای سره په جنګ شول

د جنـــون ګـــــذار په میني بـــــــرابر شو
عشق یې ړوند که او جنــــون ورباندې بر شو

خـــوار پخپـــلو دواړو سترګـــــو نابینا شو
د خــــــــدایانو مــــــــرکې ته په ژړا شو

چې زه ړونـــــــد کــړمه په سترګو لیونتوب
مبتـــــــلایې کـــــړم د عمــــــر په آشوب

اوس نه پــــــاڼ وینمه مـــــــخه کې نه لاره
نه ژوره نه غـــــــوندۍ او نه هـــــــــواره

بایـــــد وشي دا پوښتـــــنه له جنـــــــونه
چې یې وایستـــــــمه ولې له ژونــــــــدونه

دوی چې واورېــــــده له میني دا بیــــــان
دغـــه څـــــلې یې ورکېښــــوده ترمیـــان

بایــد عشق له لیونتــوب سره پخــــلا شي
د دوی شخــــړې ته د حــــل لاره پیدا شي

لیونتــــوب چې عشق په ستــر گو نابینا که
ټــول عــالم ته یې له لاسه ځــان رسوا که

پس له دې چې لیونتــوب کومه خــوا ځغلی
عشق دې هــــم له خپــــله ځانه سره ولی

دا به گـــــالي که خپه وي او که خوښ وي
بـــــاید تــل د عشق د لارې عصــا کش وي

له هغې ورځې راهیسې عشق جنـــــون شو
څوك چې چــا باندې مین شو جگر خون شو

بې جنـــــونه عشق هیـــځ لوری ته تلی نه شي
بې رهبــــره یو قــــدم خوځیــدای نشي

د فـــــرهاد هدف خو ځـــکه بې ستون دی
چې له عشق سره لازم قـــــوي جنون دی

د تلی ، ۱
۱۳۴۴ـ کابل

# انسان او شیطان

اورېـــــدلی مې له چـــــــــا نه دا قصه ده
لنـــــــډه کې ده خو معنـــی کې ښه اوږده ده

را روان و په ســــــــاراکې یـــــــو لاروی
یو ببېــــــا که بې پــــــروا د ژونـــــد روی

په صـــورت بانـــــدې تکړه په زړه غښتـــلی
د ځـــــــوانۍ په هــــــر پیچو کې او ښتـــلی

دا ســـــړی په لـــــویه لار کې شهـــواني شو
شهــوت واخیسته په ســـر او توفــــــاني شو

پـــام یې و کـــــه چې د زړه تســـل پیدا کـــړي
خپــــــل سر کشه ضرورت چېـــــرې رواکړي

هلته خیــــــــرمه یوه او ښه خـــــــــــر پېدله
د زړه غــــــــوټه یې ورو ورو راسپـــــړېدله

پښه یې و نیـــــــوه له ټکـــــه یو څه تـــم شو
څــــــــو پخپـــــله فیصله کې مصمــــم شو

یو د لاستې شـــان لرګی یې راپیــــدا که
لنــــګوټې یې له خپــل سره راجــلا که

او ښه څـــــروده همـــاسې په ورشو کې
ســــړی وتــــاړه لـــرګی ورته ورنـو کې

د شا خوانه یې ورجـــــوره یوه زینه کـړه
بیــا یې ودرېــــده او یخــه یې سینه کــړه

چې تســکین شو پښیمـــان شو له خپل کړلو
شرمنــــــده و د زینې له جـــــوړولــــو

وې یې تو لعنت په کـــــار شه د شیطــان
د رزیـــــل د بې شرف د بې وجـــــدان

کنې چیـــرې زما خیال چېـرې دا کــــار
ولاحـــول په دې سپـــی په بدکـــــردار

په ګنــــاه او په زنـــایې مبتــــلا کړم
په دې کـــــاریې ملائـــکو ته رسوا کړم

ده لا وی په بې غـــــرض شیـطان تورونه
د بــــاران غونـــدې کنځـــلې لعنتـونه

چې څـــــر ګند شو نا څـــــاپې ورته ابليس
سپيـــــنه ږيـــــــره تر بيــــــلايويې کميس

وې يې اې حرامـــــــزاده او زنــــــاکـــاره
تـــــاته کـــــله مـــا ښــــــوولی دغه لاره

څـــــــکه هېڅـــــکله زمـــا دا تکل نه و
چې په ذهـن کې مې هسې اتـــــــکل نه و

تا چې هــــــر چېـــرې پخپـــله غول خوړلی
بيـــادې زمـــا په سپينه ږيــــــره راتپــــــلی

زه شيــــــطان يم مــــګر دومره رزيل نه يم
دا د تــــــا غونـــــدې وحشي او ذليـل نه يم